د پوهنې وزارت

# پښتو

## دويم ټولګی







پښتو - دويم ټولګی

| ا | آ | ب | پ | ت |
|---|---|---|---|---|
| ټ | ث | ج | چ | ځ |
| څ | ح | خ | د | ډ |
| ذ | ر | ړ | ز | ژ |
| ږ | س | ش | ښ | ص |
| ض | ط | ظ | ع | غ |
| ف | ق | ک | ګ | ل |
| م | ن | ڼ | و | هـ-ه |
| ی | ي | ې | ۍ | ئ |


کال: ۱۳۹۸ هـ. ش



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې او ادبیاتو د اېډېټ څانګې غړي

**ټولګی:** دویم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



دا کتاب د "افغان ماشومان یې لولي" پروژې په تخنیکي مرسته تألیف شوی دی.

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو چې موږ ته یې ژوند رابښلی او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نه شو. پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک



ا

| | |
|---|---|
| اِ نـ ـسان | اِنسان |
| اَ خـ ـتر | اَختر |
| اِ مام | اِمام |
| پيـ ـدا | پيدا |

## الله جَلّ جَلالُهُ

الله جَلّ جَلالـهُ يـو دى. قُـرآن كريـم د الله جَلّ جَلالـهُ كِتـاب دى. مـوږ ټـول الله جَلّ جَلالـهُ پيـدا كـړي يـو.



مـوږ د الله جَلّ جَلالـهُ بَنـده ګان يـو.

الله جَلّ جَلالـهُ ډېر مِهرَبانه دى. مـوږ مؤمنان يـو. مـوږ د الله جَلّ جَلالـهُ عِبـادَت كـوو.



ا



ـا



ـا

| | |
|---|---|
| اَمسا | اَمـ ـسا |
| اسلام | اسـ ـلام |
| عِبادت | عِـ ـبا دت |
| پيدا | پيـ ـدا |

## الله (جَلّ جَلالُهُ)

# ټپي پيشو



## ليکل

| | |
|---|---|
| ک ـما ل | کمال |
| جَ ـلا ل | جَلال |
| جَ ـما ل | جَمال |
| دېـ وا ل | دېوال |



ل

## لَیلا او لېمه

لَیـلا او لېمـې پـه نانځکـو لوبـې کولـې. لَیـلا د نانځکـې پـر تَنـدي لاس کېښـود. ویـې ویـل: وی! سَـخته تَبـه یـې ده. لېمـې وویـل: کلینیـک تـه بـه یې یوسو. د لَیلا ورور پوښـتنه وکړه: کلینیک څـه تـه وایـي؟ لېمـې وویـل: پـه کلینیـک کې د ناروغانو عِـلاج کېـږي.



|  | لـ |
|---|---|
|  | ـلـ |
|  | ـل |

| | |
|---|---|
| لَیلا | لَیـ ـلا |
| لیمه | لیـ ـمه |
| میلمنه | میلـ ـمـ ـنه |
| دَرمَل | دَر مَل |

## لَیلا او لیمه



## تېي پیشو



## لیکل

 ا

 ل

 ـا

 ـلـ

 ـا

 ـل

۱-الله ﷻ ډېر ـــــــــــ دی. (مهربانه، لري)

۲-موږ د الله ﷻ ـــــــــــ کوو. (کور، عِبادَت)

۳-لَیلا او لیمې ـــــــــــ کولې. (لوبې، کلینیک)

۴-په کلینیک کې د ناروغانو عِلاج ـــــــ. (نانځکه، کېږي)

## الله (جَلّ جَلالُهُ)





| | |
|---|---|
|  | ا |
|  | ل |
|  | ـا |
|  | ـلـ |
|  | ـا |
|  | ـل |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| پیدا | پیـ دا | کالي | کا لي |
| زما | ز ما | جومات | جو مات |
| دُعا | دُ عا | خوشـحال | خوشـ ـحال |

## لَیلا او لیمه



## اِملا

ل

لا لب لج لد لر



ب

| | |
|---|---|
| کِتاب | کِ تاب |
| حِساب | حِ ساب |
| تَواب | تَ واب |
| کَباب | کَ باب |

## د حِساب کِتاب

ببرک او بَریالی سره ټولګیوال وو. ببرک په حساب کې تَکړه و. د بریالي حساب ښه نه و زده. له ببرک څخه یې پوښتنه وکړه: ته حِساب څنګه زده کوې؟

ببرک ووېل: زه یې له ورور څخه زده کوم. بریالي هم له خور سره حِساب پَیل کړ. ورو ورو یې حِساب زده شو. اوس په حِساب ښه پوهېږي.



|  | بـ |
| --- | --- |
|  | ـبـ |
|  | ـب |

| بَریالی | بَر یا لی |
| --- | --- |
| تبر | تـ ـبر |
| عِبادت | عِـ ـبا دت |
| مَکتَب | مَک ـتَب |

## د حِساب کِتاب

## د مور او پلار حَقونه



## لیکل



م

| | |
|---|---|
| ما شوم | ماشوم |
| با دام | بادام |
| سَـ لام | سَلام |
| اسـ لام | اسلام |

## حَضرَتِ مُحَمَّد(صَلَی اللهُ عَلَیهِ وسَلَّم)

زمونږ پَیغَمبر حَضرَتِ مُحَمَّد(صَلَی اللّٰهُ عَلَیهِ وسَلَّم) نومېږي.



هغه ډېر مِهربانه و. له ماشومانو

سره یې ډېره مینه کوله.

د ماشومانو لوبې یې خوښېدې.

حَضرَتِ مُحَمَّد(صَلَی اللّٰهُ عَلَیهِ وسَلَّم)

به ویل: د لور او زوی فرق مه کوئ.

له دواړو سره مینه وکړئ.

په دواړو تعلیم وکړئ.

| | |
|---|---|
|  | مـ |
|  | ـمـ |
|  | م |

| | |
|---|---|
| مِهربان | مِهـ ـر بان |
| لیمو | لیـ ـمو |
| قلم | قـ ـلم |
| مُعلم | مُـ ـعـ ـلم |

## حَضرَتِ مُحَمَّد ﷺ



## د مور او پلار حَقونه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | بـ |  | ـبـ |  | ـب |
|  | مـ |  | ـمـ |  | ـم |

۱-ببرک په ـــــــ کې تکړه و. (څوکۍ، حِساب)

۲-ورو ورو يې حِساب ـــــــ. (زده شو، منې)

۳-زموږ پَيغَمبَر حضرتِ محمد ﷺ ـــــــ. (نومېږي، گُلان)

۴- هغه د پر ـــــــ و. (مِهربانه، دُرود)

## د حِساب کِتاب






ا


ﻟ


ـا


ـﻠ


ـا


ـل

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| دُعا | دُ عا | بادام | با دام |
| جومات | جو مات | پَیـغَمبَر | پَیـ غَمـ بَر |
| ملالۍ | مـ لا لۍ | قلم | قـ لم |

## حضرَتِ مُحَمَّد ﷺ



## اِملا

م

ما مب مج مد مر

ما

مب

مج

مد

مر



و

| | |
|---|---|
| واو ره | واوره |
| ورا ره | وراره |
| وړانـ دي | وړاندي |
| ورو سـ ته | وروسته |

## لاس مینځل

له دوډۍ وروسته — له دوډۍ وړاندي

لاسونه مینځئ — په صابون باندي

چي له تشنابه — څوک شي راستون

لاسونه مینځي — پاک په صابون

له مَرَضونو — به په اَمان وي

واورئ، خبر دي — ټول ماشومان وي



| | |
|---|---|
| ورونه | ورو نه |
| صابون | صا بون |
| تولګۍ | تول ګۍ |
| اوتو | او تو |

| | |
|---|---|
|  | و |
|  | ـو |
|  | ـو |

## لاس مینځل

## بې پروایي



## لیکل



د

| دَر مَلـ ـتون | دَرمَلتون |
|---|---|
| دا رو | دارو |
| دَر مَل | دَرمَل |
| دا وود | داوود |

## پاک خواړه

فَریدې مېوه مینځلو ته وړله. داوود ورته وویل: ما ته لږ انګور راکړه. فَریدې وویل: صبر وکړه چې ویې مینځم. مور یې وویل: فَریده ښه وایي. وَحیدې ناپاکه مېوه خوړلې وه. بیا یې نس خوږېده. ناپاکه مېوه او سابه به هېڅکله نه خورئ.





د



ـد



ـد

| دویم | دو یم |
|---|---|
| فَریده | فَـ ـریـ ـده |
| داوود | دا وود |
| وَحیـده | وَ حیـ ـده |

## پاک خواږه



## بې پروایي



لیکل



و



د



ـو



ـد



ـو



ـد

١- له ــــــ به په امان وي. (مرضونو ، دوا)

٢-چې له ــــــ څوک شي راستون. (تشنابه، صابون)

٣-فَريدې ــــــ مينځلو ته وړله. (مېوه، كتابچه)

٤-بيا يې ــــــ خوړېده. (څوكۍ ، نس)

## لاس مينځل





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ا |  | ـا |  | ـا |
|  | ل |  | ـلـ |  | ـل |
|  | بـ |  | ـبـ |  | ـب |
|  | مـ |  | ـمـ |  | ـم |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| اسلام | اسـ ـلام | ماشوم | ما شوم |
| جومات | جو مات | دَرمَلتون | دَر مَلـ ـتون |
| پَیغَمبَر | پَیـ غَمـ بَر | لَیلا | لَیـ ـلا |

## پاک خواږه



## اِملا

د

بد جد سد صد طد

بد

جد

سد

صد

طد



آ

| | |
|---|---|
| آ ذان | آذان |
| آ فَـ ـرین | آفَرین |
| آ رام | آرام |
| آ سو نه | آسونه |

## آس

آصِف گُلانو ته اوبه وړې. آس وشنشنېده. په اوبو پسې یې زور وکړ. آصِف وویل: اوهو! آس تږی دی.



اوبه یې ورته کېښودې. آس اوبه وڅښلې او آرام شو. آصِف پلار ته کیسه وکړه. د هغه پلار آدم خان وویل: آفَرین زویه! هېر مې و چې آس ته اوبه کېږدم.

| | |
|---|---|
|  | آ |
|  | ـا |
| <br>حُسنا | ـا |

| | |
|---|---|
| آفَرین | آ فَ ـرین |
| آصِف | آ صِف |
| آسمان | آسـ ـما ن |
| خُرما | خُر ما |

آس

## د مور خِدمَت



لیکل



س

| او دَس | اودَس |
|---|---|
| اَلـ ـماس | اَلماس |
| گېـ ـلاس | گېلاس |
| بُرس | بُرس |

## د غاښونو مینځل

نَسیمه سَهار، غَرمه او ماښام غاښونه مینځي.



د هغې غاښونه سپین او صفا دي. که غاښونه ونه مینځل شي، خرابېږي.

ناپاک غاښونه روغتیا ته زیان رَسوي. هر څوک باید خپل غاښونه په بُرس یا مِسواک ولري. پاک او صفا غاښونه د ژوند خوند تر عمر کوي.

| | |
|---|---|
|  | سـ |
|  | ـسـ |
|  | ـس |

| | |
|---|---|
| سَهار | سَـ ـهار |
| نَسیمه | نَـ ـسیـ ـمه |
| مِسواک | مِسـ ـواک |
| بَکس | بَکس |

## د غاښونو مینځل



## د مور خِدمَت



لیکل



آ



س



ا



ـسـ



حُسنا

ـا



ـس

۱- آس ـــــــــــــــــــــ.

۲- آدم خان وَويل: آفَرين ـــــــــــ!

۳- د هغې غاښونه پاک او ـــــــ دي.

۴- پاک او صفا غاښونه ـــــــــ عُمر کوي.

(وشښنبېده، لرګی)

(زويه، کِتاب)

(مِسواک، صفا)

(ډېر، تور)

آس





| ب | ـبـ | ـب |
| --- | --- | --- |
| م | ـمـ | ـم |
| و | ـو | ـو |
| د | ـد | ـد |







## هجا

| بَریالی | بَر یا لی | حامِد | حا مِد |
| --- | --- | --- | --- |
| کِتاب | کِـ تاب | دَرمَلتون | دَر مَلـ تون |
| ماشوم | ما شوم | گُلدانۍ | گُلـ دا نۍ |

## د غاښونو مینځل



## اِملا

س

بس جس سا سن سو

بس

جس

سا

سن

سو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ا |  | ـا |  | ـا |
|  | ر |  | ـلـ |  | ـل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| را وړل | راوړل | لَیـ ـلا | لَیلا |
| ا نار | انار | لېـ ـمه | لېمه |

## فیل او موږک

فیل او موږک ملګري وو. فیل غټ و. خوراک یې هم ډېر و.



یوه ورځ موږک ډېر خواړه وخوړل. ناروغه شو. فیل بیزو ته ورو ست. بیزو درمل ورکړل. په خندا یې ورته وویل: خوراک په اندازه کوه. د فیل خوراک د فیل کولمې غواړي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
|  | بـ |  | ـبـ |  | ـب |
|  | مـ |  | ـمـ |  | ـم |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَریالی | بَر یا لی | موبایل | مو بایل |
| عِبادت | عِـ بـا دت | لیمو | لیـ ـمو |

## فیل او موږک

# ولاړې اوبه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | و |  | و |  | و |
|  | د |  | د |  | د |

| | | | |
|---|---|---|---|
| واو ره | واوره | دَر مَل ـتون | دَرمَلتون |
| وَ حیـ ـده | وَحیده | دو یم | دویم |

## ټوکه

بَریالی او توریالی ورونه دي.



توریالی په باغچه کې ناست و. درس یې لوستلو. خو بریالی بې‌کاره ګرځېده. په دې وخت کې آس وششنېده.

بریالي پوښتنه وکړه:

دا آس ولې ششنېږي؟

توریالي په خندا وویل: په تا پورې خاندي. ځکه چې درس نه وایې.



آ



ســ



ـا



ـســ



حُسنا

ـا



س

| آذان | آ ذان |
|---|---|
| آسمان | آس مان |

| مُسلمان | مُ سل مان |
|---|---|
| سَلام | سَ لام |

## ټوکه



## ولاړې اوبه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ا |  | ـا |  | ـا |
|  | لـ |  | ـلـ |  | ـل |
|  | بـ |  | ـبـ |  | ـب |
|  | مـ |  | ـمـ |  | ـم |

١- فیل او موږک ______ وو. (خواږه، ملګري)

٢- خوراک په اندازه ______. (کوه، کارونه)

٣- توریالی په ______ کې ناست و. (آس، باغچه)

٤- دا آس ولې ______؟ (ششنبې، وايي)

## فیل او موږک





| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١ | ه | ـو | ذ | بـ |
| ٢ | جـ | ع | آ | ـن |
| ٣ | ـل | ر | هـ | ـگ |
| ٤ | ظ | پ | غـ | ا |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٥ | ـلـ | ج | س | ـه |
| ٦ | ـد | ر | ـسـ | ز |
| ٧ | قـ | م | ک | ح |
| ٨ | تـ | ـو | عـ | ـب |

| ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ٥ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
|  |  |  |  |  |  |
| میله | کور | جاکټ | آرام | سودا | بار |
| منه | سر | ساعت | بادام | دادا | کار |
| کیله | لمر | دولت | ماشوم | ماما | انار |
| توله | تور | ملت | دام | دوا | تار |

## توکه



## اِملا

ود آس

بو عد سآ طس

بو
عد
سآ
طس



# ی

| | |
|---|---|
| او ړۍ | اوړۍ |
| سیو رۍ | سیورۍ |
| ستو رۍ | ستورۍ |
| یو ځای | یوځای |

## د کال فصلونه

یَما له یَعقوب څخه پوښتنه وکړه: یو کال څو فَصله دی؟

یَعقوب ورته وویل: یو کال څلور فَصله دی. یَما وویل: نومونه یې راته واخله.

یَعقوب وویل: پسرلی، اوړی، منی، ژمی. دا یې هم وویل چې هر فَصل درې میاشتې دی. هره میاشت څلور اونۍ ده. هره اونۍ اووه ورځې لري.





يـ



ـيـ



ی

| | |
|---|---|
| يَعـ ـقوب | يَعـقوب |
| يَـ ـما | يَما |
| کَـ ـميـ ـس | کَميس |
| منـ ـگـ ـی | منگی |

## د کال فصلونه

### ښيګڼه



## ليکل



ت

| | |
|---|---|
| تِـ لا وت | تِلاوت |
| عِـ با دت | عِبادت |
| قـ لات | قلات |
| سَـ خا وت | سَخاوت |

## د غاښونو ساتنه

تلوسې په غاښونو بادام ماتول. غاښ يې خوږ شو. پلار يې روغتون ته بوتله. ډاکټرې له تلوسې څخه پوښتنه وکړه: غاښ دې ولې خوږ شوی دی؟ تلوسې وویل: بادام مې پرې مات کړي دي. ډاکټرې وویل:



دَرمَل به دَرکړم.
غاښ به دې ښه شي. نور ګوره په غاښونو کلَک شيان مه ماتَوه.



تـ



ـتـ



ـت

| تورپېکۍ | تور پېـ ـکۍ |
| --- | --- |
| پوښتنه | پوښـ ـتـ ـنه |
| ماتَول | ما تَـ ـول |
| ساعت | سا عت |

## د غاښونو ساتنه



## ښېګڼه



لیکل

 پـ

 ټـ

 ـيـ

 ـتـ

 ـي

 ـت

۱- یو کال څلور ــــــــــ دی. (مَکتَب، فَصله)

۲-هر فَصل ــــــــــ میاشتې دی. (درې، څوکۍ)

۳- تلوَسې په ــــــــــ بادام ماتَول. (غاښونو ، مخ)

۴-غاښ یې خوږ ــــــــــ. (تلوَسه، شو)

## د غاښونو ساتنه





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | و |  | ـو |  | ـو |
|  | د |  | ـد |  | ـد |
|  | آ |  | ـا |  | ـا |
|  | سـ |  | ـسـ |  | ـس |



## هجا

| بریالی | بر یا لی | حامِد | حا مِد |
|---|---|---|---|
| کِتاب | کِـ تاب | دَرمَلتون | دَر مَل تون |
| ماشوم | ما شوم | گُلدانۍ | گُلـ دا نۍ |

## د غاښونو ساتنه



## اِمـلا

ت

بت جت ست عت لت

بت

جت

ست

عت

لت



ر

| | |
|---|---|
| ر ڼا | رڼا |
| سـ ـهـا ر | سهار |
| ر وان | روان |
| خو ر ې | خورې |

## د وَخت ارزښت

بریالي ډېر وَخت په لوبو تېراوه.

رڼا ورته وویل: وروره! له سَهاره تر ماښامه لوبې کوې. درسونه به دې کله لولې؟ بریالي وویل: بیا به یې ولولم. وخت ژر تېرېده.



امتحانونه راورسېدل.

رڼا اول نومره شوه. د بریالي نومرې کمې وې.

بریالي له ځان سره وویل: خور مې رښتیا ویل. اوس د وخت په ارزښت پوه شوم.



ر



ـر



ـر

| روان | ر وان |
|---|---|
| بَرَکت | بَ ـرَ کت |
| کورَنۍ | کو رَ نۍ |
| بزگر | بـز گر |

## د وخت ارزښت

## ښکلې ولسوالي



## لیکل



پ

| شا کوپ | شاکوپ |
| --- | --- |
| غو ړپ | غوړپ |
| گروپ | گروپ |
| توپ | توپ |

## آزادي

پَرویز په پنجَره کې مرغان ساتلي وو. مور يې ورته وويل: زويه! آزاد يې کړه. بَچي به لَري. آزار به درته وکړي.
پرویز نه مَنله. بله ورځ د دوی یو کَلیوال راغی. هغه له زندان څخه آزاد شوی و.



هغه خپل ماشومان په غېږ کې ونيول.
د خوشحالۍ اوښکې يې تويولې. پرويز راغی، بَندي مرغان يې آزاد کړل.



پـ



ـپـ



ـپ

| | |
|---|---|
| پنـجَـره | پنـ جَـ ـره |
| لَپه | لَـ ـپه |
| پَرویز | پَر ویز |
| کپ | کپ |

## آزادي



## ښکلې ولسوالي



لیکل



ر



پـ



ـر



ـپـ



ـر



ـپ

۱- له سَهاره تر ماښامه ______ کوي. (لوبې، مکتب)

۲- اوس د ___ په ارزښت پوه شوم. (سپین، وخت)

۳- آزار به درته ______. (وکړي، خوشحال)

۴- بندي مرغان يې ______ کړل. (پنجَره، آزاد)

## د وخت ارزښت





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | آ |  | ـا | <br>حُسنا | ـا |
|  | ـسـ |  | ـسـ |  | ـس |
|  | ـبـ |  | ـيـ |  | ـی |
|  | ـتـ |  | ـتـ |  | ـت |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| آصِف | آ صِف | گاونډی | گا ونـ ډی |
| آفَرین | آ فَـ رین | ورته | ور ته |
| سَهار | سَـ هار | شَفتالو | شَفـ تـا لو |

## آزادي



## اِملا

پ

پا بپ سپ عپ طپ

پا
بپ
سپ
عپ
طپ



ن

| آ ســان | آسان |
|---|---|
| ایـ ـمان | ایمان |
| آســ ـمان | آسمان |
| کار وان | کاروان |

## کِتاب

مینې او اماان الله کتابونه لوستل. مینې امان الله ته وویل: وروره! یو ښه شعر خو راته ووایه. امان الله وویل: سمه ده. د کتاب شعر به درته ووایم.

آسمان کې زانې دي
زانې وَزرې لــري
کِتـاب ملګری زمـا
کِتاب ښـه خوند لـري

کِتـاب کې پاڼې دي
کِتـاب خبـرې لــري
کِتـاب ملـګری د تـا
پـوهـه د ژونـد لــري





ـن



ـنـ



ن

| ناهید | نا هیـد |
| --- | --- |
| رَنگینه | رَنـ گیـ نه |
| کِتابونه | کِـ تا بونه |
| لمن | لـ من |

## کِتاب

# اوبو وړی پُل



## لیکل



ج

| | |
|---|---|
| ر واج | رواج |
| سِـ ـراج | سِراج |
| وَ هاج | وَهاج |
| مُحـ ـتاج | مُحتاج |

## کیسې



جمیله او نجیبه سره ټولګیوالې دي. یوه ورځ یې په باغچه کې دَرسونه ویل. دواړه ستړې شوې. جمیلې وویل: یوه کیسې به درته ووایم.

جامــه یې تکــه توره      پـه خپـلـه سپین وي، ګوره!

جامــه یـې د لـرګیـو      پـه خپـلــه د غــوړیــو

وایه څه دی؟ وایه څه دی؟

ځواب ته زما زړه دی

نجیبې ورته وویل: پوهه شوم. جلغوزی دی.

| | |
|---|---|
|  | ﺟ |
|  | ﺠ |
|  | ج |

| | |
|---|---|
| جمیله | جـ ـمیـ ـله |
| نَجیب | نَـ ـجیب |
| جَمال | جَـ ـمال |
| حج | حج |

## کیسې



## اوبو وړی پُل



## لیکل

 نـ
 جـ

 ـنـ
 ـجـ

 ن
 ج

١- کِتاب ________ لري. (خبرې، کتابچه)

٢- زانې ________ لري. (ونې، وَزرې)

٣- جامه يې د ________. (لرګيو، خاوره)

٤- په خپله ________ وي، ګوره! (تور، سپين)

کِتاب






| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | بـ |  | ـیـ |  | ی |
|  | تـ |  | ـتـ |  | ـت |
|  | ر |  | ـر |  | ـر |
|  | پـ |  | ـپـ |  | ـپ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| رڼا | ر ڼا | پنجره | پنـ ـجـ ـره |
| بریالی | بر یا لی | ګاونډی | ګا ونـ ـډی |
| پوښتنه | پوښـ ـتـ ـنه | یَما | یَـ ـما |

## کیسې



## اِملا

ج

جا جد جس جص جط

جا

جد

جس

جص

جط



# ک

| | |
|---|---|
| چا لاک | چالاک |
| ځیـ ـرَک | ځیرَک |
| مو ږک | موږک |
| سَـ ـړک | سَړک |

## ترافیک پولیس



کریم د ځیـرَک ماما دی. هغه ترافیـک پولیـس دی.
ځیـرَک ورځخه پوښتنه وکـړه: ماما! دا څراغونه د څه لپاره دي؟



کریم وویل: دا ترافیکي څراغونه دي. دا نه پرېږدي چې موټرونه سره ټَکر شي.
هر رنګ یې یوه معنا لري.
سور څراغ وايي، ودَرېږه.
ژېړ څراغ وايي، تَیار شه.
شین څراغ وايي، تېرېږه.

| | |
|---|---|
|  | کـ |
|  | ـکـ |
|  | ـک |

| | |
|---|---|
| کریم | کـ ـریم |
| تَکر | تَـ ـکر |
| مکتب | مکـ ـتب |
| ترافیک | تـ ـرا فیک |

## ترافیک پولیس

### له سَړک څخه تېرېدل



## لیکل



ټ

| آ لو کاټ | آلوکاټ |
|---|---|
| کُو هاټ | کُوهاټ |
| پيـ لوټ | پيلوټ |
| واټ | واټ |

## ټال

خَټک او خاټوله سره ورور او خور دي. خَټک په ټال کې ټالۍ وهي. خاټوله چينډرۍ کوي. دواړه کټ کټ خاندي او دا ترانه وايي.

ټال ټال ټالۍ وهم          ټوپ ټوپ چينډرۍ وهم
دا د چوترې غاړه ده          دلته پَلَتۍ وهم
ټال ټال ټالۍ وِهم          شپېلۍ وهم شپېلۍ وهم
ډکه د مَستو کټو          زه په کې خمڅۍ وهم



| | |
|---|---|
|  | ټـ |
|  | ـټـ |
|  | ـټ |

| | |
|---|---|
| ټولګي | ټو لـ ـګي |
| پټو | پـ ـټو |
| کَټوه | کَـ ـټـ ـوه |
| کریکِټ | کریـ ـکِـ ـټ |

## ټال



## له سَړک څخه تیریدل



## لیکل

 ک

 ټ

 ـکـ

 ـټـ

 ـک

 ـټ

١- شین څراغ وایي ______ .　(تېرېږه، کړکۍ)

٢- سور څراغ وایي ______ .　(پړانګ، ودرېږه)

٣- ټال ټال ______ وهم.　(ټالۍ، پنسل)

۴- ټوپ ټوپ چینډرۍ ______ .　(وهم، کټ)

## ترافیک





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ر |  | ـر |  | ـر |
|  | پـ |  | ـپـ |  | ـپ |
|  | نـ |  | ـنـ |  | ـن |
|  | جـ |  | ـجـ |  | ج |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| پَلی | پَ لی | ویجاړه | ویـ ـجا ړه |
| زَرغونه | زَر غو نه | مَرجان | مَر جان |
| ارزښتناک | ار زښتـ ـناک | پرویز | پر ویز |

## ټال



## اِملا

ت

تا بت تن تد تک

تا
بت
تن
تد
تک

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
|  | یـ | |  | ـیـ | |  | ی |
|  | تـ | |  | ـتـ | |  | ـت |

| | |
|---|---|
| یَـ ـما | یَما |
| تـ ـږي | تږي |

| | |
|---|---|
| تَو ده | تَوده |
| کِـ ـتاب | کِتاب |

## تږي ګُلان

د اوړي ورځ وه. هوا تَوده وه. لَیلا او یَما له ښوونځي څخه کور ته راغلل. کورنۍ ډَنده یې ولیکله. مازدیګر باغچې ته



ووتل. لوبې یې کولې. لَیلا وویل: دا ګُلان ولې داسې مړاوي دي؟ یما وویل: دا خو تږي دي. دواړو ګُلان اوبه کړل. ګُلان وغوړېدل. لَیلا وویل: وا وا! وګوره، ګُلان خوشحاله شول.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ر |  | ـر |  | ـر |
|  | پـ |  | ـپـ |  | ـپ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| رمه | ر مه | پوښتنه | پوښـ ـتـ ـنه |
| پروا | پـر وا | لَپه | لَـ ـپه |

## تږي گلان

### میږه او لیوه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | نـ |  | ـنـ |  | ن |
|  | جـ |  | ـجـ |  | ج |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَ ـجيـ ـبه | نَجيبه | جا مي | جامي |
| منـ ـگی | منگی | نَ ـجيب | نَجيب |

## په لوبو کې پام کول

د جُمعې ورځ وه. نَجيبه او جميله په ټال کې زَنګېدلې. د نَجيبې څَپلَکه ولوېده. لاس يې پسې وغځاوه. له ټال څخه راولوېده. جميلې راپورته کړه.



پوښتنه يې ترې وکړه: ژوبله شوې خو به نه يې؟ نَجيبې جامې وڅَنډلې، ويې ويل: نه، نه، ښه يم. مور يې راغله. ورته ويې ويل: ګورئ! لوبې کوئ، خو بې پَروايي مه کوئ.

| | |
|---|---|
|  | کـ |
|  | ټـ |

| | |
|---|---|
|  | ـکـ |
|  | ـټـ |

| | |
|---|---|
|  | ـک |
|  | ـټ |

| | |
|---|---|
| کَریم | کَ ـریم |
| چابک | چا بک |

| | |
|---|---|
| تالۍ | تا لۍ |
| آلوکاټ | آ لو کاټ |

## په لوبو کې پام کول



## میږه او لېوه



## لیکل


يـ


تـ


ر


پـ


ـيـ


ـتـ


ـر


ـپـ


ی


ـت


ـر


ـپ

١- د اوړي ______ وه. (ورځ، ساعت)

٢-دوا ړو ګُلان ______ کړل. (مازديګر، اوبه)

٣-د نجيبې څپلکه ______. (ولوېده، ځمکه)

۴-لوبې کوئ، خو ______ مه کوئ. (لوبې، بې پروايي)

## تږي ګُلان





| ۱ | ا | پ | ب | س |
|---|---|---|---|---|
| ۲ | ح | خ | ج | ف |
| ۳ | ک | ق | ل | م |
| ٤ | د | ه | ن | ی |

| ٥ | ز | ر | ړ | ژ |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | ټ | ب | ح | ث |
| ٧ | ط | ظ | ښ | ت |
| ٨ | د | ذ | ن | ح |

| ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ٥ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
|  |  |  |  |  |  |
| پاک | کوم | جارو | کله | تال | چاغ |
| تاک | یوم | کار | بلبله | ټکر | باغ |
| ناک | بام | جوال | تله | ټغر | کاغ |
| څوک | ناکام | جوار | بله | ټول | بیرغ |

## په لوبو کې پام کول



## اِملا

ن ج ک ټ

نم جا کا ټک

نم

جا

کا

ټک



ړ

| | |
|---|---|
| وړاند   دي | وړاندي |
| دوا   ړه | دواړه |
| گو   ړه | گوړه |
| وَ   ړى | وَړى |

## دوه ملگري

يو ړوند او يو شَل سره ملگري شول. ړانده لاره نه ليده. شَل پر لاره نه شو تللاى. دواړو داسي مشوره وکړه: شَل به ړانده ته ور په شا شي. ړانده ته به لاره ښيي. ړوند به د شَل په لارښوونه وړاندې ځي. په آخر کې دواړه خپل ځاى ته ورسېدل. په مشوره او مرسته کارونه آسانېږي.





ړ



ـړ



ـړ

| ړومبی | ړومـ ـبی |
|---|---|
| لَړم | لَـ ـړم |
| وَګړي | وَ ګـ ـړي |
| انګړ | انـ ـګړ |

## دوه ملګري

### موږک او زمری



## لیکل



خ

| شاهـ ـرُخ | شاهرُخ |
| --- | --- |
| پـ ـراخ | پراخ |
| پوخ | پوخ |
| نباخ | نباخ |

## خاتوله

شاهرُخ کور ته راغی. خاتوله خور یې خَپه وه دا شِعر یې ورته وواېه:

وایــــه څـــه خَبـــره ده؟
ماتـــه یـــې نانځکـــه ده
پښـــه بـــه یـــې پیـــدا کـــړم
خوربـــه مـــې پـــخـــلا کـــړم
گـــډې لـــوبـــې تـــل کـــوو

خـــور مـــې مَـــروره ده
پښـــه یـــې ترېنـــه ورکـــه ده
جوړه بـــه یـــې بیـــا کـــړم
دا بـــه دلاســـا کـــړم
میـــنه یـــو پـــر بـــل کـــوو



خاتوله خوشحاله او په خندا شوه.

| | |
|---|---|
|  | خـ |
|  | ـخـ |
|  | ـخ |

| | |
|---|---|
| خَبره | خَـ ـبـ ـره |
| پخلا | پـ ـخـ ـلا |
| شاهرُخ | شاهـ ـرُ ـخ |
| مخامخ | مـ ـخا مخ |

## خاتوله



## موږک او زمری



لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ړ |  | ـړ |  | ـړ |
|  | خـ |  | ـخـ |  | ـخ |

۱- ړانده لاره ______ .  (نه‌لیده، مشوره)

۲-شَل ______ نه شو تللای.  (ځنګل، پر لاره)

۳- خور به مې ______ کړم.  (پخلا، لوبې)

۴-دا به دلاسا ______.  (خورم، کړم)

## دوه ملګري





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نـ |  | ـنـ |  | ـن |  |
| جـ |  | ـجـ |  | ـج |  |
| کـ |  | ـکـ |  | ـک |  |
| ټـ |  | ـټـ |  | ـټ |  |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| کرېکټ | کرې کټ | ناجو | نا جو |
| آلوکاټ | آ لو کاټ | ترافیک | ترا فیک |
| نَجیبه | نَ جیـ به | اِکرام | اِکـ رام |

## خاټوله



## اِمـلا

خ
نخ خت خق خځ خخ



# ش

| | |
|---|---|
| مَـ عاش | مَعاش |
| دري دېرش | دري دېرش |
| پِنـ سل تراش | پِنسل تراش |
| داش | داش |

## د شاتو دوکان

شمس د بَکتاش پلار دی. هغه د شاتو دوکان لري. بَکتاش به کورنۍ دنده لیکله، وروسته به دوکان ته وَرتلو. بَکتاش به د دوکان مخه جارو کوله.



یوه ورځ بَکتاش ناروغه شو. دوکان ته ولاړ نه شو. د شمس هېر شول چې د دوکان مخه صَفا کړي. ښاروالۍ جَریمه کړ. اوس شمس هر وخت د دوکان مخه صَفا کوي. مُشتریان یې هم ډېر شوي دي.



شـ



ـشـ



ش

| | |
|---|---|
| شاکر | شا کر |
| شَمله | شَمـ لـه |
| پیشو | پیـ ـشو |
| خط کش | خط کش |

## د شاتو دوکان

# د ښوونکي حقونه



## لیکل



غ

| | |
|---|---|
| ځـ ـراغ | ځراغ |
| نا روغ | ناروغ |
| بَيـ ـرَغ | بَيرَغ |
| د ماغ | دماغ |

## بَيرَغ

غفار پَغمان ته ولاړ. هلته يې طاقِ ظَفر وليد. د طاقِ ظَفر پر سر د افغانستان بَيرَغ رَپېده. له پلار څخه يې وپوښتل: پلاره!

بَيرَغ څه شی دی؟

پلار يې ورته وويل: بَيرَغ زموږ د خپلواکۍ نښه ده. زموږ بَيرَغ درې رَنګه لري، تور، سور او زَرغون. زموږ بيرغ ښکلی دی. موږ د خپل بَيرَغ درناوی کوو.





غـ



ـغـ



ـغ

| | |
|---|---|
| غَفار | غَـ ـفار |
| زَرغون | زَر غون |
| افغانان | افـ ـغا نان |
| کَتغ | کَـ ـتغ |

## بَیرَغ



## د ښوونکي حقونه



لیکل



شـ



ـشـ



ـش



غـ



ـغـ



ـغ

۱-بَکتاش به د دوکان مخه ـــــ کوله. (جارو ، خَځلي)

۲-شَمس د بکتاش ـــــ دی. (کِتاب، پلار)

۳-بَیرَغ زمونږ د ـــــ نښه ده. (غښتلی ، خپلواکۍ)

۴-غَفار ـــــ ته ولاړ. (کِتاب، پَغمان)

## د شاتو دوکان





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | کـ |  | ـکـ |  | ـک |
|  | ټـ |  | ـټـ |  | ـټ |
|  | ړ |  | ـړ |  | ـړ |
|  | خـ |  | ـخـ |  | ـخ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| کربکټ | کرب ـکټ | لړم | لـ ـړم |
| آلوکاټ | آ لو کاټ | خولۍ | خو لۍ |
| خاټوله | خا ټو له | ګیدړ | ګیـ ـدړ |

## بَیرَغ



## اِملا





ز

| زَلـ ـمی | زَلمی |
|---|---|
| زېـ ـری | زېری |
| زا من | زامن |
| نو روز | نوروز |

## زيارکَښ بزگر

د زلمي پلار بزګر دی. هغه پیاز کرلي وو. زلمی له ښوونځي څخه کور ته رَوان و. پلار يې په کَرونده کې پیاز اوبه کول. زلمي له سلام وروسته وويل: د پيازو پاڼې مړاوې وې. اوس به تازه شي. پلار يې وويل: زويه! اوبه پيازو ته نوره څه ګټه لري؟ زلمي وويل:



د پياز غوټې غټېږي.

پلار يې وويل: آفرين! پـه مکتب کــې ډېر هوښيار شوی يې.

| ز |  |
|---|---|
| ـز |  |
| ـز |  |

| زلمی | زلـ ـمی |
|---|---|
| زرگر | زر گر |
| بزگر | بز گر |
| مَمیز | مَـ ـمیز |

## زیارکَښ بزگر

## د مرغانو سیمه



## لیکل



چ

| ما لوچ | مالوچ |
|---|---|
| بَ لوچ | بَلوچ |
| مرچ | مرچ |
| کوچ | کوچ |

## چاغې چرگې

کوچۍ د تَرکاریو دوکان لري. کوچۍ مرچ، کَچالو، پالک او نور سابه خرڅوي. مېرمنې به يې په کور کې تَرکارۍ صفا کولې. پاتې شونې به يې پر ډېران غورځول. گاوَنډۍ مېرمنې غونچې ورته وویل: د تَرکارۍ پاتې شونې وَلې ایسته اچوې؟ چرگې وساته. د تَرکارۍ پاتې شونې چرگو ته اچوه. د کوچۍ مېرمنې همداسې وکړل. چرگې يې واخیستې. د دوی چرگې چاغې شوې. اوس هره ورځ هگۍ اچوي.





چـ



ـچـ



چ

| چرګي | چر ګي |
|---|---|
| غونچه | غونـ ـچه |
| کوچی | کو چی |
| سوېچ | سـ ـوېچ |

## چاغي چرګي



## د مرغانو سیمه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ز |  | ـز |  | ـز |
|  | چـ |  | ـچـ |  | ـچ |

۱- د زلمي پلار ــــــــ دی.
۲- هغه ــــــــ کرلي وو.
۳- کوچي د ــــــــ دوکان لري.
۴- د دوی چرګې ــــــــ شوې.

(بزګر، لاړښوونه)
(بکس، پیاز)
(ښوونه، ترکاریو)
(چاغې، چرګوړي)

زیارکښ بزګر





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ړ |  | ـړ |  | ـړ |
|  | خـ |  | ـخـ |  | ـخ |
|  | شـ |  | ـشـ |  | ـش |
|  | غـ |  | ـغـ |  | ـغ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| گوړه | گو ړه | شېبه | شې به |
| دواړه | دوا ړه | افغانان | اف غا نان |
| خاتوله | خا تو له | بَیرَغ | بَیـ رَغ |

## چاغي چرگي



## اِملا

چ

چت چد چر چو چی

چت
چد
چر
چو
چی



ښ

| | |
|---|---|
| سر پوښ | سرپوښ |
| با لا پوښ | بالاپوښ |
| نا خوښ | ناخوښ |
| اوښ | اوښ |

## کوکوپښ

ښاپېرۍ خپل ورور اجمل ته وویل: د کوکوپښ شعر دې اورېدلی دی؟

اجمل وویل: نه. ښاپېرۍ وویل: زه به درته د کوکوپښ شعر ووایم.

موږ ته راکړه دوه ښکلي — کوکوپښه، پښه، پښه
سبا راشه په اتڼ — در واده به کړو چونګښه
د اوبو غاړې ته راشه — کوکوپښه، پښه، پښه
شین خالۍ چونګښه یوسه — ستا جوجوغه شخه پخه



اجمل وویل: څومره ښکلی شعر و.

ښاپېرۍ وویل: مننه.

| | |
|---|---|
|  | ښـ |
|  | ـښـ |
|  | ـښ |

| | |
|---|---|
| ښوونځی | ښو ونـ ـځی |
| هوښیار | هوښـ ـیار |
| مَـښوکه | مَـ ـښو که |
| کوکوپښ | کو کو پښ |

## کوکو پښ

### له ماشومانو سره مینه



## لیکل



| ګ |
|---|

| ورد ګ | وردګ |
|---|---|
| بـ ـزر ګ | بزرګ |
| برَګ | برَګ |
| چرګ | چرګ |

## ګُلان

ګُلاب خان بَڼ لري. په بَڼ کې يې رنګ رنګ ګُلان شته. سره، سپين، ژيړ، نارنجي او ګُلابي ګُلان. هر ګُل ښايسته ښکاريږي.

ګُلاب خان ګُلان خَرڅوي. هغه ښې پيسې ګټي. ځيني ګُلان ښه بوی لري. له ځينو ګُلانو څخه عَطر جوړيږي. د سنځلو، ګُلابو او نارنجو عَطر ښه بوی لري. خلک دغه عَطرونه خوښوي. د شاتو مُچۍ له ګُلانو څخه شات جوړوي.



| | |
|---|---|
|  | گ |
|  | ـگـ |
|  | ـگ |

| | |
|---|---|
| گُلاب | گُ ـلاب |
| ځنگل | ځنـ ـگل |
| پالنگ | پا لنگ |
| لَوَنگ | لَ ـوَنگ |

## گُلان



## له ماشومانو سره مینه



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ښـ |  | ـښـ |  | ـښ |
|  | ګـ |  | ـګـ |  | ـګ |

۱- شین خالی ـــــــ یو سه. (چونګښه، قلم)

۲- ستا جوجوغه شخه ـــــــ . (پخه، ښوکې)

۳- ځینې ګُلان ـــــــ بوی لري. (خوند، ښه)

۴- ګُلاب خان ګُلان ـــــــ. (خرخوي، غرخه)

## کوکوپښ





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | شـ |  | ـشـ |  | ـش |
|  | غـ |  | ـغـ |  | ـغ |
|  | ز |  | ـز |  | ـز |
|  | چـ |  | ـچـ |  | ـچ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| شُغله | شُغـ له | کَچالو | کَـ چا لو |
| چاغي | چا غي | چرگان | چر گان |
| زیارکَښ | زیار کَښ | اَفغانان | اَفـ غا نان |

## گُلان



## اِملا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ـړ |  | ـړ |  | ړ |  |
| خ |  | ـخـ |  | خـ |  |

| ړوم ـبی | ړومبی |
|---|---|
| لَ ـړم | لَړم |

| خو لی | خولی |
|---|---|
| تخ ـته | تخته |

## گیدَړه او ښارو

یوه وَرز ماتې ښارو پر ښاخ ناسته وه. په ونه کې غومبسو هم ځاله جوړه کړې وه. گیدَړه له کومې خوا څخه راغله. پر ښارو یې سترگې ولگېدې. تر ونې لاندې ورته تاوېده را تاوېده. گېدَړې



غوښتل چې پر ښارو باندې سَر وگرځوي. ښارو لاندې راولوېږي او دا یې وخوري. غومبسې له ښارو سره مرسته وکړه. گیدَړه یې پر پَزَه وچیچله. گیدَړه وتښتېده. ښارو یې له شَره خلاصه شوه.

|  | شـ |  | ـشـ |  | ـش |
|---|---|---|---|---|---|
|  | غـ |  | ـغـ |  | ـغ |

| شـ ـمـ ـع | شمع | غو مـ ـبـ ـسي | غومبسي |
|---|---|---|---|
| پیـ ـشـو | پیشو | تَـ ـغر | تغر |

## ګیدَړه او ښارو

### پیشو او موږک



لیکل



ز



چ



ز



چ



ز



چ

| ز لمی | زلمی | چيـ ـچل | چيـچل |
|---|---|---|---|
| بَز گر | بَزگر | مـ ـچيـ | مـچيـ |

## د مچيو ځاله

زلمي تر ونې لاندې کتاب لوست. پر ونه د انګورو تاک غځېدلی و. زلمی ورپورته شو چې انګور وشکوي. هغه چې وَرِی شکاوه، مچۍ وچيچه.



زلمي چيغه کړه. انګور يې له لاسه ولوېدل. ملګرو يې رامنډې کړې. د زلمي لاس ته يې وکتل. يوه ملګري وويل: ته خو پر مچيو ډېر ګران يې. وګوره! څنګه يې لاس درته مچو کړ. زلمي خپل درد هېر کړ او په خندا شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ښـ |  | ـښـ |  | ـښ |
|  | ګـ |  | ـګـ |  | ـګ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ښو ونـ ځی | ښوونځی | ګُـ ـلاب | ګُلاب |
| کو ښـښ | کوښښ | ځَنـ ـګل | ځَنګل |

## د مچیو ځاله



## پیشو او موږک



## لیکل


ړ

خـ

شـ

غـ


ـړ

ـخـ

ـشـ

ـغـ


ـړ

ـخ

ـش

ـغ

۱- پر ښارو يې ______ ولګېدې. (سترګې، ونه)

۲- ګيدَړه يې پر پزه ______. (لاس، وچيچله)

۳- زلمي تر وني لاندې ______ لوست. (کِتاب، انګور)

۴- هغه چې وړی شکاوه، ______ وچيچه. (لوست، مچۍ)

## ګيدَړه او ښارو





| ١ | ع | فـ | شـ | ـو |
|---|---|---|---|---|
| ٢ | گ | د | ژ | بـ |
| ٣ | ا | ـر | فـ | ـړ |
| ٤ | ـبـ | غـ | ج | خـ |

| ٥ | ق | ړ | ـد | ښ |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | خـ | آ | هـ | ذ |
| ٧ | س | ـز | ط | غ |
| ٨ | ج | حـ | چـ | ه |

| ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ٥ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
|  |  |  |  |  |  |
| شفیع | مزار | سړی | غڼ | تخت | مخ |
| شمع | ممیز | زلمی | غرمه | پخته | مچۍ |
| شال | مېز | زوړ | ناروغ | پوخ | مچ |
| شرم | مزدور | زمرۍ | غر | تخته | مالوچ |

## د مچیو ځاله



## اِملا

ز چ ښ گ
جز چد ښا گج

جز
چد
ښا
گج



ژ

| رو ژه | روژه |
| --- | --- |
| ژَ به | ژَبه |
| ژَ می | ژَمی |
| ژرنـ ده | ژرنده |

## لیک او لوست

مُژده او منیژه مکتب ته تللې وې. بَرقي د برېښنا بِل راوړی و. بِل یې د دوی پلار ته ورکړی و. دوی چې له مکتب څخه راغلې، پلار یې وویل: لونو! دلته راشئ. دا بِل وګورئ. منیژه ژر ورمخ ته شوه. بِل یې ولوست.



پلار ته یې وویل: دا خو د ژرنده ګړي د برېښنا بِل دی.

پلار یې له ځان سره وویل: که په لیک پوهېدای، پرَدی بِل به مې نه اخیست. زه به خامخا لیک او لوست زده کوم.



ژ



ژ



ژ

| | |
|---|---|
| ژمني | ژ مـ ـني |
| منیژه | مـ ـنیـ ـژه |
| نژدې | نـژ دې |
| بنداژ | بنـ ـداژ |

## لیک او لوست

### د ډوډۍ خوړلو ادبونه



## لیکل



ځ

| | |
|---|---|
| ګ هیځ | ګهیځ |
| ږ منځ | ږمنځ |
| پوځ | پوځ |
| ورځ | ورځ |

## وږې سُویه

یو ځوان هَره ورځ د ځنګله له څنګه تېرېده. ځوان به له کلي څخه ګازرې راوړې. ګازرې به یې په بازار کې خرڅولې. یوه ورځ یې یوه ځنګلي سُویه ولیده. سُویه پر لاره بې حاله پرته وه. ځوان سُویه را پورته کړه. ګازره یې ورته ونیوه. سُویې ګازره ژر ژر وخوړه. ځوان پوه شو چې سُویه ډېره وږې ده. یو څو نورې ګازرې یې هم ورکړې.



سُویه چې مَړَه شوه، په ترَپکو ځنګله ته ننوته.



ځـ



ـځـ



ځ

| | |
|---|---|
| ځنگل | ځنـ ـگل |
| ښځه | ښـ ـځه |
| اِنځر | اِنـ ـځر |
| گهیځ | گـ ـهیځ |

## ورې سُویه



## د ډوډۍ خوړلو ادبونه



## لیکل


ژ


ځ


ږ


ځ


ږ


ځ

۱-مُژده او منیژه ــــ ته تللي وې. (مکتب، خبره)

۲- بَرقي د برېښنا بِل ــــــــــ . (برق، راوړی و)

۳-یوه ورځ يې یوه ځنګلي ــــــ ولیده. (خبره، سُویه)

۴-سُویه پر لاره ــــــ پرته وه. (بې حاله، موټر)

## لیک او لوست





| | |
|---|---|
|  | ز |
|  | چـ |
|  | ښـ |
|  | گـ |

| | |
|---|---|
|  | ـز |
|  | ـچـ |
|  | ـښـ |
|  | ـگـ |

| | |
|---|---|
|  | ـز |
|  | ـچ |
|  | ـښ |
|  | ـگ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| زَلمی | زَلـ ـمی | ښکلی | ښکـ ـلی |
| مچی | مـ ـچی | گیدَړه | گیـ ـدَ ړه |
| وچیچله | و چیـ چـ ـله | تخته | تخـ ـته |

## وړې سُویه



## اِملا

خ

خا خب خک خل خم

خا

خب

خک

خل

خم



ډ

| | |
|---|---|
| ډو ډۍ | ډوډۍ |
| ډ پـ وه | ډپوه |
| هوډ من | هوډمن |
| ډا لۍ | ډالۍ |

## ګډ کار

ډپوه له ښوونځي څخه کور ته راغله. ګوري چې مور يې کالي ګنډي. ډپوې وويل: مورې! پلار مې چېرته دی؟

مور يې وويل: د غنمو لَو ته تللی دی. ډپوې وويل: چې ډوډۍ وخورم، بيا به زه هم ورشم.



ډپوې ډوډۍ وخوړه. د غنمو پټي ته ورغله. پلار يې د غنمو ګېډۍ راغونډولې. ډپوې هم ورسره ګېډۍ راغونډې کړې. کار ژر تمام شو. پلار يې وويل: خير يوسې لورې! ګډ کار بَرَکت لري.

| | |
|---|---|
|  | ډ |
|  | ـډ |
|  | ـډ |

| | |
|---|---|
| ډېوه | ډ ېـ ـوه |
| ګېډۍ | ګېـ ـډۍ |
| ګنډي | ګنـ ـډي |
| راغونډ | را غونډ |

## ګډ کار

## د خبرو کولو ادبونه



## لیکل



څ

| سَر لوڅ | سَرلوڅ |
| --- | --- |
| بَ ـلوڅ | بَلوڅ |
| غوڅ | غوڅ |
| بوڅ | بوڅ |

## غرڅه

ځانګه له پلار سره ځنګله ته ولاړه. له یو څه مَزله وروسته ځانګه ستَړې شوه. په ځنګله کې تر یوې ونې لاندې کښېناستل. ګوري چې له غره څخه څو غرڅې راکښته شوې. د غره په لمن کې



څملاستې. یوې غرڅې په لوړ ځای ورته ځار کاوه. څو شیبې وروسته ځارونکې غرڅې څه ولیدل. چیغه یې وکړه. نورې غرڅې پاڅېدې او وتښتېدې. پلار ځانګې ته وویل: ګوره لورې! ځاروي هم د ځان په ساتلو پوهېږي.



څـ



ـڅـ



څ

| څانگه | څانـ ـگه |
|---|---|
| کَڅوړه | کَ ـڅو ړه |
| غرڅه | غر څه |
| غوڅ | غوڅ |

## غرڅه



## د خبرو کولو ادبونه



## لیکل



ډ



څ



ډ



څ



ډ



ځ

۱-ډېوه له ښوونځي څخه ــــــ ته راغله. (قلم، کور)

۲- د ــــــ لَو ته تللی دی. (غنمو، پنسل)

۳-څانګه له پلار سره ــــــ ته ولاړه. (ځنګله، غومبسه)

۴-له یو څه مَزله وروسته څانګه ــــــ شوه. (ستړې، غوخ)

## ګډ کار





ښـ 
ښـ 
ـښ 

ګـ 
ـګ 
ـګ 

ژ 
ـژ 

ـژ 

ځـ 
ـځـ 
ـځ 

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| بریښنا | بریښـ ـنا | ژمی | ژ می |
| دَره | دَ ره | ځَنګل | ځَنـ ـګل |
| ښکلي | ښکـ ـلي | ښځه | ښـ ـځه |

## غرڅه



## اِمـلا

ځ
څا ځ څت ځ څد



ړ

| ړ منځ | ړمنځ |
| --- | --- |
| ړیـ ـره | ړیره |
| ړَ لۍ | ړَلۍ |
| وَ ړی | وَړی |

## ړَلۍ

وړمه له ښوونځي څخه کور ته روانه وه. ناڅاپه، په آسمان کې تورې ورېځې را پَیدا شوې. وړمه کور ته نه وه رسېدلې چې باران شو. سپوړمۍ د وړمې مور وارخطا شوه. زوی ته یې غَږ کړ: ولي زویه! چَترۍ واخله. په وړمې پسې ورشه. هسې نه



چې ړَلۍ وشي. ولي وړمې ته چَترۍ وروړه. دوی چې کور ته راورسېدل، سخته ړَلۍ و ورېده. وړمې ولي ته وویل: مننه لالا جانه. که دې چَترۍ نه وای راوړې، لَنده خیشته به وم.



ږ



ـږ



ـږ

| | |
|---|---|
| ږَلۍ | ږَ لۍ |
| ږیره | ږیـ ره |
| کېږدۍ | کېږ دۍ |
| ورمېږ | ور مېږ |

ږَلۍ

## بابر بڼ



لیکل



ق

| صا دِق | صادِق |
|---|---|
| طا رِق | طارِق |
| فا روق | فاروق |
| اَخ لاق | اَخلاق |

## بې ځايه لوبې

قُدسيه او يَعقوب خور او ورور دي. يَعقوب قُدسيې ته وويل: راځه چې پر بام ګوډۍ والوځوو. قُدسيې وويل: نه، نه. دا خو خَطَر لري. يَعقوب يې خبره و نه منله. بام ته وخوت. ګوډۍ يې هوا ته پورته کړه. يَعقوب پاس ګوډۍ ته کتل.



شا ته روان و چې يو ناڅاپه له بامه را وغورځېده. قُدسيې چيغې کړې. پلار يې قاهِر په منډه راغی. يَعقوب يې روغتون ته يوور. الله ﷻ يَعقوب روغ کړ. اوس هغه بې ځايه لوبې نه کوي.


قـ


ـقـ


ـق

| قلم | قـ ـلم |
|---|---|
| تقسیم | تقـ ـسیم |
| رَفیق | رَ فیق |
| شَفَق | شَ ـفَق |

## بې ځایه لوبې



## بابر بَڼ



## لیکل



ـږ



قـ



ـږ



ـقـ



ږ



ق

۱- ولي وږمې ته ______ وروړه. (ښوونځی، چَترۍ)

۲- سخته ______ و ورېده. (ږَلۍ، کټ)

۳- گوډۍ یې هوا ته ______ کړه. (پورته، سویه)

۴- الله جل جلاله یَعقوب روغ ______. (گوډۍ، کړ)

## ږَلۍ





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ژ |  | ـژ |  | ـژ |
|  | ځـ |  | ـځـ |  | ـځ |
|  | ډ |  | ـډ |  | ـډ |
|  | څـ |  | ـڅـ |  | ـڅ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| ډوډۍ | ډو ډۍ | څارونکی | څا رون کی |
| ډېوه | ډې وه | ځنگل | ځن گل |
| څانگه | څا نگه | ښځه | ښـ ځه |

## بې ځایه لوبې



## اِملا

ق

بق جق صق طق عق

بق
جق
صق
طق
عق



# ف

| مـ عا رِف | معارِف |
|---|---|
| نَـ دا ف | نَداف |
| اَشـ ـر ف | اَشرف |
| شَـ ـرَف | شَرَف |

## فيل

فيل يو ځنګلي او قوي ځناور دی. فيل لنډه لکۍ او اوږد خَرطوم لري. فيل خواږه او اوبه په خَرطوم سره خولې ته وړي. فيلان غټې او پلن غوږونه لري. فيلان ډلې ډلې ګرځي. فيلان په ګډه له ځانه دفاع کوي. د هِند او اَفريقا په ځنګلونو کې فيلان ډېر دي. فيلان ډېر درانه بارونه وړلی شي.



په پخوا وختونو کې تجارتي مالونه په فيلانو لېږدېدل. د اَفغانِستان په ژوبڼ کې هم يو فيل و.



فـ



ـفـ




ـف

| | |
|---|---|
| فیلان | فیـ ـلان |
| اَفغانِستان | اَفـ غا نِسـ ـتان |
| شفتالو | شفـ ـتا لو |
| ظَریف | ظَـ ـریف |

فیل

## د وخت ارزښت



لیکل



# ڼ

| تر کاڼ | ترکاڼ |
| --- | --- |
| ځد راڼ | ځدراڼ |
| گل بڼ | گلبڼ |
| شـکوڼ | شکوڼ |

## د مڼو بَڼ

د رَڼا پلار یو ښکلی بَڼ لري. د دوی په بَڼ کې د مڼو ونې دي. د دوی بَڼ ژېړې او سرې مڼې لري. ژېړې او سرې مڼې ډېرې خوندَورې وي. په میدان وردگو کې د مڼو ډېر باغونه دي.



په بَڼ کې د مڼو ونې کتار کتار ولاړې وي. په منې کې د ونو ژېړې پاڼې ښکلې ښکاري. د مڼو او نورو مېوو خوړل گټه لري. له مڼو څخه خلک مُربا هم جوړوي. د مڼو مُربا خوندَوره او خوږه وي. زما مُربا خوښېږي.

| | |
|---|---|
|  | ڼـ |
|  | ـڼـ |
|  | ڼ |

| | |
|---|---|
| رَڼا | رَ ڼا |
| مڼې | مـ ـڼې |
| پاڼې | پا ڼې |
| ژوبَڼ | ژو بَڼ |

## د مڼو بَڼ



## د وخت ارزښت



## لیکل



فـ



ڼـ



ـفـ



ـڼـ




ـف



ـڼ

١- فیلان ______ ګرځي. (ډَلې‌ډَلې، خرطوم)

٢- فیلان ډېر درانه ______ ورلی شي. (هوا، بارونه)

٣- دا بڼ ژېړې او سرې ______ لَري. (اوبه، منې)

٤- د منو او نورو مېوو خوړل ______ لَري. (ګټه، قلم)

## فیل





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ډ |  | ـډ |  | ـډ |
|  | څـ |  | ـڅـ |  | ـڅ |
|  | ږ |  | ـږ |  | ـږ |
|  | قـ |  | ـقـ |  | ـق |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| ډوډۍ | ډو ډۍ | غرڅه | غر څه |
| ګېډۍ | ګېـ ډۍ | ږمنځ | ږ منځ |
| څانګه | څان ګه | ورږمه | ورږ مه |

## د مڼو بڼ



## املا

ږ

بږ جږ سږ فږ لږ

بږ
جږ
سږ
فږ
لږ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ـژ |  | ـژ |  | ژ |  |
| ـځ |  | ځـ |  | ځ |  |

| ځَنګل | ځَنـ ګل | ژمی | ژ می |
|---|---|---|---|
| ږمنځ | ږ منځ | منیژه | مـ نیـ ژه |

## هوښیار بزګر

فضل کاکا په ځمکه کې په کار بوخت و. زوی یې ځیرک ناڅاپه چیغه کړه. پلاره ژر راشه! دا څه شی دی؟ پلار یې ژر ځان ور ورساوه. ورته یې وویل:



پام چې ور نږدې نه شې! ماین دی. فضل کاکا د ماین ځای په نښه کړ. کلیوال یې خبر کړل چې ځانونه او څاروي ځنې وساتي. فضل کاکا ماین پاکان راوستل. ماین پاکانو ماین وکیښ. خلک یې د ماین له خطره وژغورل.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ډ |  | ـډ |  | ـډ |
|  | ځـ |  | ـځـ |  | ځ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ډَنډر | ډَنـ ـډر | ځَوکۍ | ځَو کۍ |
| ګېډۍ | ګېـ ـډۍ | کځوړه | کـ ـځو ړه |

## هوښیار بزګر

### مرسته



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ږ |  | ـږ |  | ـږ |
|  | قـ |  | ـقـ |  | ـق |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ږُ منځ | ږُمنځ | قُد رت | قُدرت |
| کېږ دی | کېږدی | زَنـ بق | زَنبق |

## قُدرت الله او خیرالله

قُدرت الله غنم ژرندې ته وړل. ژرنده له کلي څخه ډېره لرې وه. قُدرت الله په لاره کې ستړی شو. لاسي کراچۍ یې د لارې خوا ته ودروله. د ونې ډډ ته یې تکیه وکړه.



په دې وخت کې د ده ملګری، خیرالله راغی. ورته یې وویل: قُدرت الله! لکه چې ستړی شوی یې. راځه زه به درسره مرسته وکړم. دواړو غنم وار په وار ژرندې ته یووړل. قُدرت الله له خیرالله څخه مننه وکړه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | فـ |  | ـفـ |  طریف | ـف |
|  | ـڼ |  | ـڼـ |  | ـڼ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فیـ ـلان | فیلان | مـ ـڼې | مڼې |
| شفـ ـتا لو | شفتالو | ژو بڼ | ژوبڼ |

## قُدرت الله او خیرالله



## مرسته



لیکل

| انځور | توری |
|---|---|
|  | ژ |
|  | ځـ |
|  | ډ |
|  | څـ |

| انځور | توری |
|---|---|
|  | ـژ |
|  | ـځـ |
|  | ـډ |
|  | ـڅـ |

| انځور | توری |
|---|---|
|  | ـژ |
|  | ـځ |
|  | ـډ |
|  | ـڅ |

۱-فضل کاکا د ماین ځای ______ کړ.　　(په نښه، تېره)

۲- پام چې ور نژدې ______، ماین دی.　　(راشه، نه شې)

۳- قُدرت الله غنم ______ ته وړل.　　(ژرندې، کتاب)

۴-قُدرت الله په لاره کې ______ شو.　　(ولوېد، ستړی)

## هوښیار بزګر





| ۱ | ښ | م | ډ | ر |
|---|---|---|---|---|
| ۲ | ق | ط | ت | ع |
| ۳ | س | ص | د | ځ |
| ٤ | ذ | ژ | ز | ړ |

| ۵ | خ | ث | س | پ |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | ک | ذ | ږ | ب |
| ۷ | ت | ف | ه | ن |
| ۸ | ع | ض | ن | ڼ |

| ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۵ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
|  |  |  |  |  |  |
| بوډۍ | ژرژر | قوم | خوکۍ | فال | مانۍ |
| ګېډۍ | ژبه | فِلم | خوک | کال | منه |
| ډوډۍ | ژوند | قلم | خپلۍ | فیل | رڼا |
| ډاډ | ژرنده | چاقو | خانګه | فِلم | ناک |

## قُدرت الله او خيرالله



## اِملا

ړ ق ف ن

تړ بق فص لن

تړ
بق
فص
لن



ح

| فَـ ـتاح | فَتاح |
|---|---|
| اِصـ ـلاح | اِصلاح |
| نِـ ـکاح | نِکاح |
| جَـ ـراح | جَراح |

## حَوض

د جُمعې ورځ وه. ملیحه او فتاح ډېر خوشحاله وو. پلار یې ژمنه کړې وه چې مېلې ته به ځو. دوی یې مېلې ته بوتلل.

فتاح او ملیحې د کرېکِټ لوبه کوله. توپ یې په حَوض کې ولوېد. فتاح او ملیحه ورغلل چې توپ را واخلي. پلار یې ولیدل چې توپ اوبو ته لوېدلی دی.



توپ یې ورته را وایست. فَتاح او ملیحې ته یې وویل: بچیانو! حوض ته نژدې لوبې مه کوئ. خدای ﷻ مه کړه، په کې وبه لوېږئ.



حـ



ـحـ



ح

| حَلال | حَـ ـلال |
| --- | --- |
| مليحه | مليـ ـحه |
| مِحراب | مِحـ ـراب |
| تسبيح | تسـ ـبيح |

حوض

## ملګرتيا او دوستي



ليکل



ذ

| | |
|---|---|
| ذا کِر | ذاکِر |
| ذا کِ ره | ذاکِره |
| ذکـ یه | ذکیه |
| ذَ ره بین | ذَره بین |

## مُهِم کاغَذونه

ذکیه وَړه ده. په لیک لوست نه پوهېږي. پرون له الماري څخه یو کاغذ رالوېدلی و. ذکیې کاغذ را واخیست. اور یې ورته واچاوه. مور یې ذاکِره په منډه ورغله. په کاغذ لګېدَلی اور یې مړ کړ. په دې وخت کې ذِکرالله له ښوونځي څخه راغی.



مور یې وویل: زویه! ته دا کاغذ وګوره چې د څه شي دی. ذِکرالله نیم سوی کاغذ وکوت. د دوی د کور د برېښنا بِل و. ذِکرالله مور ته وویل: دا خو د کار کاغذ دی. مُهِم کاغذونه باید په خوندي ځای کې وساتل شي.

| | |
|---|---|
|  | ذ |
|  | ـذ |
|  | ـذ |

| | |
|---|---|
| ذکیه | ذکـ ـیه |
| ذاکِر | ذا کِر |
| کاغذونه | کا غـ ـذو نه |
| کاغذ | کا غذ |

## مُهِم کاغَذونه



## ملګرتیا او دوستي



## لیکل

 ح

 ذ

 ـحـ

 ـذ

 ح

 ـذ

۱- ملیحه او فتاح ډېر ـــــــ وو. (غوښتل، خوشحاله)

۲- فتاح او ملیحه ـــــــ. (حوض، ورغلل)

۳- پرون له الماری یو کاغذ ـــــــ و. (سپین، رالوېدلی)

۴- د دوی د کور د ـــــــ بِل و. (برېښنا، الماری)

## حوض





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ړ |  | ـړ |  | ـړ |
|  | قـ |  | ـقـ |  | ـق |
|  | فـ |  | ـفـ |  | ـف |
|  | ڼـ |  | ـڼـ |  | ـڼ |

ظریف

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| ړیره | ړیـ ـره | یعقوب | یعـ ـقوب |
| کبړدۍ | کبړ دۍ | ژوبڼ | ژو بڼ |
| قلم | قـ ـلم | ترافیک | تـ ـرا فیک |

## مُهِم کاغَدونه



## اِملا

ذ

بذ جذ غذ قذ هذ

بذ

جذ

غذ

قذ

هذ



ص

| | |
|---|---|
| اِخـ ـلاص | اِخلاص |
| خَـ ـواص | خَواص |
| مَخـ ـصوص | مَخصوص |
| را خلاص | راخلاص |

## نظافت

صابرې صادِق ته وویل: وروره، ښوونځي ته د تګ وخت دی.
صادِق ورته وویل: لږ صبر وکړه. زه مې مخ او لاسونه مینځم.
صابرې وویل: ما هم مخ او لاسونه په صابون ومینځل. صابره
او صادِق ښوونځي ته ولاړل. ښوونکي شاګردان وکتل. د
دېرو جامې صفا وې. نوکان يې لنډ وو. د سر وېښتان يې هم
صفا وو. ښوونکي ټولو ته آفرين ووايه.



صابرې او صادِق ته يې چکچکې وکړې.
ځکه چې هغوی خپل کتابونه هم پاک
ساتلي وو. ښوونکي وويل: له صفايي
سره د انسان زړه خوشحاله وي. ثواب
هم لري.



صـ




ـصـ




ـص

| | |
|---|---|
| صابره | صا ب ره |
| رُخصت | رُخ صت |
| اِخلاص | اِخ لاص |
| صابون | صا بون |

## نظافت

### بې ځایه ویره



## لیکل



ض

| | |
|---|---|
| فَـ ـياض | فَياض |
| مـ ـرض | مرض |
| ر ياض | رياض |
| عِـ ـوض | عِوض |

## بې پروايي

ضيا ، مُرتضى او فَياض ملگري دي. هغوی يو ځای لوبې کوي.
ضيا غوښتل چې په سړو اوبو کې ولامبي.
فَياض ورته وويل: ورورہ! منی دی،په سړو اوبو کې مه لامبه.
ناروغه به شې. ضيا د هغه خبره ونه منله. په سړو اوبو کې يې
ولمبل. ضيا سبا ته مريض شو.



مُرتضى او فَياض، ضيا ته ورغلل. ضيا خو ورځې ونه ليد. پوښتني ته يې ورغلل.
ضيا ورته وويل: بې پروايي مې وکړه. ستاسو خبره مې ونه منله.
د حوض په سړو اوبو کې مې ولمبل. مريض شوم. نور به داسې
بې پروايي نه کوم.



ض



ضـ



ـض

| ضرر | ضـ ـرر |
| --- | --- |
| فَیاض | فَـ ـیاض |
| ضیا | ضـ ـیا |
| مریض | مـ ـریض |

## بې پروايي



## بې ځايه ويره



ليکل



ص




ـصـ



ـص



ضـ



ـضـ




ـض

۱- صابره او صادِق ښوونځي ته ـــــــ . (ولاړل، کابل)

۲-د سر ـــــــ یې هم صفا وو. (نوکان، وېښتان)

۳- ضیا غوښتل چې په ـــ اوبو کې ولامبي. (سړو، مریض)

۴-ضیا د هغه خبره ـــــــ . (ونه منله، مریض)

## نِظافت







فـ



ـفـ




ـف



نـ



ـنـ



ـن



حـ



ـحـ



ـح



ذ



ـذ



ـذ

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| فیلان | فیـ ـلان | رَنا | رَ نا |
| افغانستان | اف غا نسـ ـتان | فتاح | فـ ـتاح |
| منې | مـ ـنې | ملیحه | مـ ـلیـ ـحه |

## بې پروايي



## اِملا

ض

ضک ضل ضم ضن ضو

ضک

ضل

ضم

ضن

ضو



ط

| | |
|---|---|
| اِحـ ـتیاط | اِحتیاط |
| خـ ـیاط | خیاط |
| خ ـطاط | خطاط |
| اِر تِـ ـباط | اِرتِباط |

## خطاطي

طاهِرې د طیبې کتابچه ولیده. ویې ویل: طیبه جانې! دا کَلِمه شَریفه چا درته لیکلې ده؟ طیبې ووېل: دا ما لیکلې ده. طاهِرې ووېل: او هو! ډېر ښکلی خط دې دی. سَمه خطاطه یې. طیبې ووېل: مننه. زه هره ورځ د خط مَشق کوم. طاهِرې ووېل: ارمان چې زما خط ستا د خط غوندې وای.



طیبه موسکۍ شوه. ویې ویل: دا خو آسانه خبره ده. ته هم مَشق کوه. زه به خطاطي در زده کړم. طاهرې مننه وکړه او خطاطي یې پیل کړه. څه موده وروسته یې خط ښایسته شو.

| | |
|---|---|
|  | ط |
|  | ـطـ |
|  | ـط |

| | |
|---|---|
| طاهِره | طا هِـ ـره |
| خطاطي | خـ ـطا طي |
| خطاط | خـ ـطاط |
| طيبه | طـ ـيـ ـبه |

خطاطي

## دوستي



ليکل




ظ

| مَحـ ـفو ظ | مَحفوظ |
| --- | --- |
| لِـ ـحا ظ | لِحاظ |
| حِـ ـفا ظ | حِفاظ |
| الـ ـفا ظ | الفاظ |

## بیزوګی

ظاهِر او مَحفوظ ځنګله ته تللي وو. د بیزوګي چیغې یې واورېدې. د بیزوګي پښه د ونې په ښاخونو کې بنده وه. ظاهِر ونې ته وروخوت. ښاخونه یې سره بېل کړل. بیزوګی راکښته شو، منده یې کړه. مَحفوظ وویل: هله چې بیزوګي دې ځادر وتښتاوه! ظاهِر وویل: زما د نېکۍ لحاظ یې هم ونه کړ؟ وروسته بیزوګی له یوې غوټې سره بېرته راغی. ظاهِر وویل: دا خو زما ځادر دی. غوټه یې خلاصه کړه. ګوري چې غوزان او جلغوزي دي. مَحفوظ وویل: عجبه ده! بیزوګی هم پوهېږي چې د نېکۍ بدله نېکي ده.




ظریف

ظ


حفیظه

ظـ



ـظ

| | |
|---|---|
| ظاهِر | ظا هِر |
| مَظلوم | مَظـ ـلوم |
| لِحاظ | لِـ ـحا ظ |
| حَفیظ | حَـ فیـ ظ |

## بیزوګی



## دوستي



## لیکل



ط



ظریف

ظ



ط



حفیظه

ظ



ط



حفیظ

ظ

۱- طاهِرې د طبیبې کتابچه ـــــــــ .　　(واورېده، ولیده)

۲-ښه موده وروسته یې خط ـــــــ شو.　　(ښایسته، خراب)

۳-د بیزوګي ـــــــــ یې واورېدې.　　(چیغې ، سترګې)

۴-بیزوګی ـــــــ شو.　　(راکښته، وتښتاوه)

## خَطاطي





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | حـ |  | حـ |  | ح |
|  | ذ |  | ذ |  | ذ |
|  | صـ |  | صـ |  | ص |
|  | ضـ |  | ضـ |  | ض |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| حمیده | حـ میـ ده | کاغذ | کا غذ |
| خوشحال | خوشـ حال | رُخصت | رُخـ صت |
| ذَره بین | ذَ ره بین | اِخلاص | اِخـ لاص |

## بیزوګی



## اِملا

ظـ

ظب ظع ظق ظل ظم

ظب
ظع
ظق
ظل
ظم



ع

| | |
|---|---|
| شُـ ـروع | شُروع |
| دِ فاع | دِفاع |
| اِخـ ـتِـ ـراع | اِختِراع |
| وِ داع | وِداع |

## مُطالعه

عابِده او عُمَر د عَبدالله اولادونه دي. دوی به له پلار څخه پوښتني کولې. پلار يې عالِم سړی دی. د دوی پوښتني به يې ځوابولې. عابِدې پلار ته وويل: تا دومره شيان له چا زده کړي دي؟ پلار يې وويل: دا مې له ملګرو زده کړي دي. عُمَر وويل: ملګري دې څوک دي؟ پلار يې وويل: ملګري مې ډېر دي. دوی ډېر معلومات لري.



عابِدې وويل: نو مونږ ته يې هم راوښيه. پلار يې په خندا وويل: زما ملګري کِتابونه دي. ډېر کتابونه مې مُطالعه کړي دي.

هر عِلم په کِتابونو کې وي.

| | |
|---|---|
|  | عـ |
|  | ـعـ |
|  | ـع |

| | |
|---|---|
| عابِده | عا بِـ ـده |
| عالِم | عا لِم |
| تعلیم | تَعـ ـلیم |
| شمعَ | شـ ـمـ ـعَ |

## مُطالعه

## د جوماټ ادبونه



## لیکل



ي

| گازَرې | گا زَ رې |
|---|---|
| شیدې | شیـ ـدې |
| تروې | تر وې |
| مورې | مو رې |

## مېوې

زموږ هېواد مُعتَدِله هوا لري. خاوره يې د مېوو او غَلو دانو کولو ته جوړه ده. ډَول ډَول مېوې په کې کېږي. مېوې په دوه ډوله دي. تازه مېوې او وچې مېوې. مَڼې، آلوچې، اَنګور، هِندوانې، خَټکي، اَنار، مالتې تازه مېوې دي. بادام، پسته، غوزان، جَلغوزي، مُمپلي او نخود وچې مېوې بلل کېږي.



ځینې مېوې هم تازه وي، هم وچېږي. لکه توت، اَنګور او خَټکي. مېوې بدن ته ګټه لري. تازه مېوې باید پاکې ومینځل شي. د ناپاکو مېوو خوړل اِنسان مریضوي. د هېواد ځینې مېوې نورو هېوادونو ته لېږل کېږي.


ې


ـېـ


ـې

| مېوې | مـې وې |
| --- | --- |
| هېواد | هـې واد |
| مېنه | مـې نه |
| شيدې | شيـ دې |

## مېوې



## د جومات ادبونه



ليکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | عـ |  | ـعـ |  | ـع |
|  | ې |  | ـېـ |  | ـې |

١- دوی به له پلار څخه ______ کولې. (کتابونه، پوښتنې)

٢-دوی ډېر معلومات ______. (لري، عِلم)

٣-ډَول ډول ______ په کې کېږي. (مېوې ، وچې)

٤-مېوې بدن ته ______ لري. (مريضوي، گټه)

## مُطالعه





| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
|  | ص |  | ص |  | ص | | |
|  | ض |  | ض |  | ض | | |
|  | ط |  | ط |  | ط | | |
|  | ظ |  | ظ |  | ظ | | |



## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| صابِره | صا بِـ ـره | طیب | طـ ـیب |
| رُخصت | رُخـ ـصت | طاهِره | طا هِـ ـره |
| ضَرَر | ضَـ ـرَر | حَفیظ | حَـ ـفیظ |

## میوې



## اِمـلا


حـ


ذ


ـحـ


ـذ


ح


ـذ

| حا جي | حاجي | ذَ كي | ذَكي |
| --- | --- | --- | --- |
| تَس بيح | تَسبيح | كا غذ | كاغذ |

## رُخصَتي

ذاكِر په حَميد پسې كور ته وَرغى. حَميد راووت. كاغذ او قلم يې په لاس كې وو. ذاكِر وويل: راځه چې لوبې وكړو. بيا به په حَوض كې ولامبو. حَميد وويل: زه خو اوس درس وايم. مازديگر به لوبې وكړو. ذاكِر وويل: نن خو رُخصَتي ده. په رُخصَتۍ كې نو چا درس ويلى؟ په دې وخت كې د حَميد مور راووتله.



ويې ويل: په رُخصَتيو كې هم لوبې وكړئ، هم درسونه ووايئ. بيا به د مكتب درسونه درته آسانه شي.

ذاكر وويل: سمه ده ترورې!



صـ



ضـ




ـصـ



ـضـ



ـص



ـض

| صابون | صا بون |
|---|---|
| تَصویر | تَصـ ـویر |

| ضابِط | ضا بِط |
|---|---|
| مریض | مـ ـریض |

## رُخصَتي

## ناروغي



## لیکل



ط



ط



ط




ظ




ظ



ظ

| طا هِ ره | طاهِره | ظا هِر | ظاهِر |
|---|---|---|---|
| خَ طاط | خَطاط | مَحـ فوظ | مَحفوظ |

## د خَطاطۍ قَلمونه

ظَریف د ظاهِر او طاهِرې پلار دی. یوه ورځ طاهِرې وویل: پلاره! زما د خَط کِتابچه ډکه شوې ده. ظاهِر وویل: زما هم د خَطاطۍ قلمونه په کار دي. پلار یې وویل: نو راځئ چې بازار ته پسې ولاړ شو. بازار ته ورسېدل. ظاهِر وویل: هاغه دی، نَظَر مُحَمَّد ماما مې وګورئ. نَظَرمُحَمَّد ډېر ښه خطاط دی. هغه دخَطاطۍ قَلَمونه ښه پېژني. ظاهِر ته یې د خَطاطۍ قَلَمونه واخیستل. طاهِرې وویل: ماما! زما کتابچه دې هېره شوه؟ نَظَر مُحَمَّد وویل: نه، نه. د خَط ښکلې کتابچه به درته واخلم.



 عـ

 ي

 ـعـ

 ـبـ

 ع

 ي

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَینَکي | عَیـ نَـ کي | مېوي | مـې وي |
| مُطالعه | مُـ طا لـ عه | آلوچي | آ لو چي |

## د خَطاطۍ قَلمونه



## ناروغي



ليکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | حـ |  | ـحـ |  | ح |
|  | ذ |  | ـذ |  | ـذ |
|  | صـ |  | ـصـ |  | ـص |
|  | ضـ |  | ـضـ |  | ـض |

١- بیا به په ـــــ کې ولامبو. (حَوض، میدان)

٢- زه خو اوس درس ـــــ. (قلم، وایم)

٣- ظریف د ظاهِر او طاهِرې پلار ـــــ. (دی، شته)

۴- زما د خط کتابچه ـــــ شوې ده. (بازار، ډکه)

## رُخصَتي





| ۱ | ط | ت | پـ | فـ |
|---|---|---|---|---|
| ۲ | ث | تـه | ص | عـ |
| ۳ | جـ | گـ | چـ | ظ |
| ٤ | نبـ | حـ | خـ | چ |

| ٥ | د | ض | ر | نـ |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | ذ | ثـ | عـ | ص |
| ٧ | هـ | قـ | عـ | ژ |
| ٨ | گـ | ل | مـ | ي |

| ۱  | ۲  | ۳  | ٤  | ٥  | ٦  |
|---|---|---|---|---|---|
| زره | توت | خط | صابر | عَینَکي | خولۍ |
| ذره بین | تور | سطل | صبر | اییک | مرۍ |
| زږه | طوطي | خطاطي | صابون | چوغکي | څپلۍ |
| ذاکِر | موچي | خطر | صابره | الوتکي | هیلۍ |

## د خَطاطۍ قَلمونه



## اِملا

ط ظ ع ي
طس ظع عف حي

طس
ظع
عف
حي



ۍ

| او رۍ | اورۍ |
|---|---|
| بې ړۍ | بېړۍ |
| ش ړۍ | شړۍ |
| پې ړۍ | پېړۍ |

## څپلۍ

هیلۍ او هوسۍ سره ملګرې دي. د دوی کورنۍ خوشحاله ژوند لري. تېره اونۍ هیلۍ او هوسۍ بازار ته ولاړې. هوسۍ ورور ته کورتۍ او خولۍ واخیستې. هیلۍ هم خپلې خور سپوږمۍ ته څپلۍ واخیستې. څپلۍ د سپوږمۍ په پښو کې جوړې نه وې. سپوږمۍ خپه شوه. هیلۍ ورته وویل: خورې! مه خپه کېږه. څپلۍ به بېرته درته بدلې کړم. بله ورځ هیلۍ او سپوږمۍ بازار ته ولاړې.



دوکاندار څپلۍ وربدلې کړې.
سپوږمۍ له دوکاندار څخه مننه وکړه.







| ۍ | ـۍ | ـۍ |
|---|---|---|

| | |
|---|---|
| هیلۍ | هیـ لۍ |
| هوسۍ | هو سۍ |
| کورنۍ | کو ر نۍ |
| سپوږمۍ | سپوږ مۍ |

## خپلۍ

### بخښنه



## لیکل



ي

| | |
|---|---|
| سـ ـړي | سړي |
| دوسـ ـتي | دوستي |
| تيکـ ـري | تيکري |
| ګـ ـړي | ګړي |

## د مرغۍ بَچي

وَلي او سَخي سره ملګري دي. وَلي سپينه پيشولري. پيشو په باغ کې ګرځي او مېو مېو کوي. يوه ورځ وَلي او سَخي په باغ کې لوبې کولې. د مرغۍ بچي يې ولېدل چې له ځالې



راولوېدلي وو. پيشو غوښتل چې ويې خوري. د وَلي او سَخي ورته پام شو. دواړو د مرغۍ بَچي را واخيستل. په ځاله کې يې کېښودل. مرغۍ په مَښوکه خپل بَچي ونازول. وَلي وويل: وګوره! مرغۍ خوشحالي کوي. په چوڼ چوڼ له مورې څخه مننه کوي.

|  | ي |
|---|---|
|  | ـيـ |
|  | ي |

| بَچي | بَـ ـچي |
|---|---|
| سپینه | سپیـ ـنه |
| لیدل | لیـ ـدل |
| پیشو | پیـ ـشو |

## د مرغۍ بَچي



## بخښنه



## لیکل

 ی

 ي

 ـی

 ـېـ

 ـی

 ـي

۱- تېره اونۍ هیلۍ او هوسۍ بازار ته ــــــ . (واخیستې، ولاړې)

۲- خپلۍ د سپوږمۍ په پښو کې ــــ نه وې. (جوړې، هیلۍ)

۳- د وَلي او سَخي ــــــ پام شو. (باغ، ورته)

۴- وګوره! مرغۍ ــــــ کوي. (خوشحالي، مېومېو)

## خپلۍ





| | | |
|---|---|---|
| ط  | ـط  | ـط  |
| ظ  | ـظ  | ـظ  |
| ع  | ـعـ  | ـع  |
| ي  | ـيـ  | ـي  |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| طاهِره | طا هِـ ره | تعلیم | تعـ لـيم |
| ظریف | ظ ـریف | عالِم | عا لِم |
| حَفیظه | حَـ فیـ ظه | میوي | میـ وي |

## د مرغۍ بَچي



## اِملا

ي

ـي سي صي طي ي

ـي
سي
صي
طي
ي



ث

| | |
|---|---|
| غِـ ـیاث | غِیاث |
| وا رِث | وارِث |
| میـ ـراث | میراث |
| اِ ناث | اِناث |

## ماین

ثُرَیا او غیاث پر لاره روان وو. ثُرَیا وویل: هغه څه شی دی؟ ثُرَیا ور روانه شوه. غیاث ژر له لاسه راونیوه. ویې ویل: پام! پام! ثُرَیا ځای په ځای ودرېده. ویې ویل: غِیاث لالا څه خَبَره ده؟ غیاث وویل: هغه سرې نښې نه وینې؟ ثُرَیا وویل: هغه تیرې چې په سره رنګ په نښه شوې دي؟ غیاث وویل: هو! دا د خَطر نښې دي. چېرته چې ماینونه وي، په همدې نښو نښودل کېږي. هغه د پَتَنګ په شان شی وینې؟ هغه ماین دی، ماین. ثُرَیا وویل: وی، ښه شوه چې پوهه دې کړم.



| <br> | ثـ |
|---|---|
| <br> | ـثـ |
|  | ـث |

| | |
|---|---|
| ثُریا | ثُـ ـرَ یا |
| عُثمان | عُثـ ـمان |
| کوثر | کو ثر |
| مُثَلَث | مُـ ـثَـ ـلَث |

## ماین

### د ماین خَطر



## لیکل



ځ

| | |
|---|---|
| گو رئ | گورئ |
| را وړئ | راوړئ |
| و کړئ | وکړئ |
| و لـ ـرئ | ولرئ |

## اِتفاق

یوه سپین ږیري غوښتل خپل زامن له بې اِتفاقۍ څخه وباسي.

یوه ورځ یې زامنو ته وویل:



ورشئ، ما ته د لښتو یوه ګېډۍ راوړئ. هغوی ورته ګېډۍ راوړه. بیا یې ګېډۍ هر زوی ته د ماتولو لپاره ورکړه. هغوی ګېډۍ ماته نه شوی کړای. سپین ږیري په خپله ګېډۍ خلاصه کړه. یوه یوه لښته یې ماته کړه. خپلو زامنو ته یې وویل:

ګورئ! تاسو د ګېډۍ په څېر یو ځای اوسئ، اِتفاق ولرئ. په دې کې به ټول ګټه وکړئ. که بې اِتفاقه شوئ، ټول به تاوان وکړئ.



ئ



ـئ



ـئ

| | |
|---|---|
| وکړئ | و کړئ |
| مه نیسئ | مه نیـ سـئ |
| نیسئ | نیـ سـئ |
| اَخلئ | اَخ لـئ |

## اِتفاق



## د ماين خَطر



## ليکل




ثـ



ئ




ـثـ



ـئ



ـث



ـئ

۱- دا د خَطر ــــــــــــ دي. (کتابچه، نښې)

۲- غِیاث لالا څه خبره ــــــ؟ (ده، لاره)

۳- ما ته د لښتو یوه ــــــ راوړئ. (ماتېږئ، ګېډۍ)

۴- تاسو د ګېډۍ په څېر ــــ اوسئ. (لښته، یوځای)

ماین





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ی | ی | ۍ | | | |
| ي | ـيـ | ې | | | |
| ء | ـعـ | ع | | | |
| ې | ـېـ | ي | | | |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| مېوې | مېـ وې | کورنۍ | کو ر نۍ |
| عَینَکې | عَیـ نَـ کې | سپوږمۍ | سپوږ مۍ |
| عالِم | عا لِم | مستي | مسـ تي |

## اِتفاق



## اِملا

ۍ
طی عی فی کی لی

طی
عی
فی
کی
لی



ح

| اِصـ ـلاح | اِصلاح |
| --- | --- |
| فَـ ـلاح | فَلاح |
| نِـ ـکاح | نِکاح |
| فَـ ـتاح | فَتاح |

## د هيلۍ بچی او چرګوړی

نَرۍ باران ورېده. چرګوړی د حَوض پر غاړه پاتې و. ژړل يې. د هيلۍ بَچی ورغی. ورته ويې ويل: ولې ژاړې؟ چرګوړي وويل: زمونږ کور د حَوض پورې غاړه دی. په حَوض نه شم ور ګډېدای. د هيلۍ بچي يې اوښکې پاکې کړې. ورته ويې ويل: اَوَل وخانده، بيا دې له حَوض څخه پورې باسم. چرګوړي وخندل. د هيلۍ بَچي ورته وويل:



اوس نو زما پر شا کېنه. چرګوړي شا ته ور ټوپ کړ. د هيلۍ بَچي په حوض کې لامبو ووهله. چرګوړی يې له حَوض څخه پورې ايست. چرګوړی خوشحاله شو او مننه يې ترې وکړه.



ــح



ـحـ



حـ

| | |
|---|---|
| حامِد | حا مِد |
| مِحراب | مِحـ ـراب |
| تَسبیح | تَسـ ـبیح |
| فَتاح | فَـ ـتاح |

د هیلۍ بچی او چرګوړی

## نیکي



لیکل



هـ

| هېـ ـواد | هېواد |
|---|---|
| هِنـ ـدوا ـنې | هِندوانې |
| هَـ ـوا | هَوا |
| سَـ ـهار | سَهار |

## هیله او اُمید

د خَیبرَ له ژونده زړه تور و. یوه شپه یې په ژړا وویل: پښه مې ماین وَهَلې ده. نه مې ځان ته خَیر رسېږي او نه نورو ته. پلار یې دوې شَمعې راوړې. یوه جوړه وه، بله ماته. دواړه یې ولګولې.



دواړو یو ډول رَڼا کوله. پلار یې وویل: وګوره! ماته شَمعَ هم پوره رَڼا کولَی شي. ناهیلَی کېږه مه. که ته تعلیم وکړې، ځان او خلکو ته به دې خیر ورسېږي. خَیبَر د پلار لاسونه ښکل کړل. ویې ویل: ډېره مَننه. د ژوند روښانه لاره دې راوښوده.

| | |
|---|---|
|  | هـ |
|  | ـهـ |
|  | ـه |

| | |
|---|---|
| هغوی | هـ ـغوی |
| مَهارت | مَـ ـها رت |
| کوټه | کو ټه |
| پورته | پور ته |

## هیله او اُمید



## نیکي



## لیکل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | حـ |  | ـحـ |  | ح |
|  | هـ |  | ـهـ |  | ـه |

۱ د هیلۍ بَچی ________. (ورغی، باران)

۲-زمونږ کور د ____ پورې غاړه دی. (اوښکې، حوض)

۳-یوه ____ وه، بله ماته. (جوړه، تعلیم)

۴-دواړو یو ډول ____ کوله. (ځان، رَڼا)

## د هیلۍ بچی او چرګوړی





| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
|  | ی |  | ـی |  | ـی |
|  | ي |  | ـيـ |  | ـي |
|   | ثـ |   | ـثـ |  | ـث |
|  | ئ |  | ـئ |  | ـئ |

## هجا

| | | | |
|---|---|---|---|
| کورتۍ | کور تۍ | ثُرَیا | ثُـ رَ یا |
| هیلۍ | هیـ لۍ | ساتئ | سا تئ |
| لرگي | لر گي | اَخلئ | اَخـ لئ |

## هیله او اُمید



## اِملا

هـ

هج هد هر هن هی

هج
هد
هر
هن
هی